سلسلہ اولیاء سرحد ۳

دَ ادبي ټولنې صوبه سرحد دَ اشاعت سلسله کښې

۱۲

# دَ ترنګزو حاجي صاحب علیه الرحمة




لیکونکے:-

نصر الله خان نصر



رومبے ځل ——— مارچ سنه ۱۹۵۱ء

خورونکے:-

دَ ادبي ټولنې صوبه سرحد لوئ مرکز بر تاکال

(پیښاور پاکستان)

تعداد:- ۱۰۰۰ ——— قیمت۔ څلور آنے (۴)

منظور عام پریس پیښاور کښې چهاپ شو

(فضل داؤد کاتب)

# سریزه

دَ فیرنګیانو دښمن د ترنګزو حاجی صاحب (حضرت فضل واحدؒ) دَ ژوند حالات به ما هیڅکله داسے تفصیل سره نه وو لیکلی که چرے دا ملک (پاکستان) دَ فیرنګیانو بادشاهی وے. هغوی دومره تنګ نظری وو که چا به دَ هغو خلاف یوه فقره هم اولیکله نو په حیاکښ به ئے نه پریخو دو. مثلاً دَ جرمن دَ سنه ۱۹۱۴ دَ لام چا بیته دَ کوهاټ خټک خیلو سرور شاعر لیکلے وه نو مخے سره ئے هغه وینو حکم اوکړو هغه غریب دَ بدے ورزے مفرور شو. دغه رنګ په زرګو نو قوم پرست خلق دَ انګریزانو دَ لاس خوار و زار او تباه شوی وو. که چرے دَ ترنګزو حاجی صاحبؒ دغه سوانح عمری ما دَ فیرنګیانو زمانه کښ چهاپ کړے وے نو دا یقینی خبره وه چه حُما دا کتاب به ئے ضبط کړے وو او خدائے تعالیٰ خبر چه ما سره به ئے څه چل کولو نو خوشکر دے چه دَ هغو حکومت نشته حُمونږ خپل آزاد اسلامی ملک پاکستان دے. دَ خپلو بزرګانو صحیح حالات په خلاص مټ چهاپ کولے شو چه حُمونږ نور رونړه ترِ عبرت واخلی. زهٔ دَ سنټرل ریکارډ آفس صوبه سرحد پښاور دَ ایرکټر آف ارکائیوز ډیر ممنون یم چه هغوی ما ته دَ ریکارډ آفس لائیبریری نه کتابونه دَ ترنګزو حاجی صاحبؒ سوانح عمری لیکلو سلسله کښ کتو دَ پاره داکړی وو.

نصرالله خان نصر مارچ سنه ۱۹۵۱ء

(۱۸۶۴)

# دَ ترنگزو حاجی صاحبؒ

دَ ترنگزو حاجي صاحبؒ اصلي نوم فضلِ واحد دے او دَ پیر
فضلِ احمد صاحبؒ خوئ دے ۔ دَ دوئ کورنئ دَ هشتنګر پیر
بودلے باباؒ اولاد کښ شمیرلے شي ۔ دَ فضلِ واحدؒ مور بي بي دَ حضرت
کاکا صاحب رحمکارؒ نمسئ ده ۔ صالاؤ کښې کښ دَ نوتے علاقے وه
فضلِ واحدؒ دَ چارسدے تحصیل ترنګزو نوم تاریخي کلي کښ ۱۸۵۶ء
کښ زیګیدلے دے ۔ چه غونټے شو ستر کے خوږ شوے ۔ خیلو
همځولو سره به ئے چه لوبے کولے نو "چوچے پیر" ورته هغوے ۔ چه
لږ هوښیار شو ۔ مور پلار جماعت کښ په سبق کښینولو ۔ چه
شونډئ ئے ښنه شوه او دَ پرتو غاښ ټینګولو شو نو بر تهکال پینبور
ته دَ دیني سبق زدکړے دَ پاره راغے ۔ دے کلي کښ ئے څلور کاله

تیر کړه۔ دَهغه زمانے طالبانو کښې مذهبي جوش به ډیر زیات وو۔ او دُغزا عاشقان۔ فضل واحدؒ هم دَهغه زمانے طالب وو دهٔ باندِ هم دُطالبانو اثر اوشو۔ چه دُحدیثو کتابونه ئے بوتهکال کښې اولوستهٔ۔ بیا واپس خپل کلی ته لاړو۔ خپله زمیند اری ئے شروع کړه۔ دغه وُرزو کښې دَکلی حُلمو سره حُجره کښې ناسته پاسته شروع کړه۔ حبیب الله ورسره دوستی جوړه کړه۔ څه موډ پس دَبد قسمتئ نه دَحبیب الله دوستانه غلجکو سره شوه۔ او هغوی سره به ئے داړے دوپے کولے۔ دوئ یوه وُرز فضلؔ واحدؒ هم ځان سره دَشپے دَیو موړ کور کښې رکونو دَپاره بوتللو۔ فضلؔ واحدؒ چه دوئ سره هغه کور ته لاړو هلته ئے په کټ کښې یوه ځوانه ښځه اولیده خو ړیده۔ دَ سپینو کالی ئے په غاړه او دَسونو کښې پرا ته وُو۔ یو وړکو تے ما شوم ورسره اړخ کښې پروت وو خپله کتهٔ کو ته ئے رودله او ستنو رو سره ئے خپله ژبه کښې خبرے کولے۔ فضلؔ واحدؒ چه دا منظر اولیدو نو دَډیرے حیا او شرم نه پرِخولے راغلے۔ حبیب الله او دَهغه ټکری ئے ځان سره دَکوره تش تور واپس راوستهٔ هغو

په لاره کښې حبیب الله ته ډیرے خبرے اوکړے چه سړی سړی ته نه ګورے خو ډله درنے - داسے ښه ښکار موډ ګوتو اووتو. څه موده پس حبیب الله ډیو سړی په سر روپئ وا خستے. ځان سره ئے اجرتی قاتلان ملګری کړه ډبډ وشا منو نه ئے فضل واحدؒ پیر هم ځان سره روان کړو. ډهغه سړی کور ته چه ورننه وَتل. هغه غولی کښی بے عمه اوده پروت وو. فضل واحدؒ پیر چه ډ ځای نه ګنډ ار کولو نو چائے لاس اونیوو. ده چه اخوا دیخوا اوکتہ جُبخت هیڅوک نه وو. حیران شو. چه بیائے پرګنډ ارکوو نو بیا ورنه چا لاس اونیوو. او هیبت ناک غیبی آوازیږ اوشو. فضل واحد ته خدائ پاک دے کار دنوله نه ئے پیدا کړے. فضل واحد پیر بانډ هیبت داغ ډدغه کوره په منډه دااووتو. حبیب الله او ډهغه ملګری ده نه ډیر زیات خفه شو. ورته ئے ووے نن شپے نه پس تاسره ځمونږ دوستی پاتے ده - ځمونږ روپئ دِمیځ کړے.

فضل واحد پیر چه کور ته راغے توبه استغفار شه ـ چه اوده شو خوب کښې ورله یو بزرګ راغے ورته ئے وے ـ پیر صاحب! ته الله تعالیٰ دَ خپلو بندګانو خدمت له پیدا کړے ـ ته چه ته آزاد ورته اُوږسوے ـ فضل واحدؒ ډیر شرمنده شو ـ خوب کښې ئې بیعت اوکړو ـ چه سحر شو فضل واحد پیر دَ جماعت کوټ اوینود ـ دَ حج دَ سفر وُرزے چه رانږدے شوے بیت الله شریف ته لاړو ـ دَ حج کولو نه پس خپل کلی ته راغے ـ بنه کار ورنه ئے شروع کړهٔ ـ

سنه ۱۸۹۷ء کښې چه انګریزانو مالاکنډ باندې لام تړلے وو ـ چترال ته ئے فوځ نه خیجول نو سرتور فقیر (سعد اللهؒ) او دَ حضرت اخون صاحبؒ سوات مُریدِ هډے ملا صاحبؒ (نجم الدین اخونزاده) مقابلے ته دَ قبائلو لښکرے راوستے وے ـ دغه لښکرو کښې فضل واحد پیر هم وو ـ چه څهٔ وخت حضرت نجم الدین اخونزاده دَ فرنګیانو دَ چکدرے په قلعه اور لګولو دغه وخت کښې ورسره فضل واحد پیر او دَ توتے علاقے لښکر

هم وو۔ دَدے غزا نه پس حاجی فضل واحد مهمند وته لاړو۔ دَحضرت نجم الدین اخونزاده نه ئے لاس نیوه اوکړو ۱۹۰۲ئه کښ چه هډے ملا صاحب رح دَدے فانی دُنیانه سفر اوکړو نو دَ ترنگزو حاجی صاحب رح دَحضرت نجم الدین اخونزاده دَماذون حضرت صوفی صاحب عالم گل نه تجدید دَبیعت اوکړو۔ صوفی صاحب ورله پټکے او توره تبرکاً ورکړه خپل خلیفه ئے کړو۔ ۱۹۰۸ئه کښ حاجی صاحب فضل واحد دوباره حج له لاړو۔ دَحج نه چه واپس وطن ته راغے۔ نو امرِمعروف خپله علاقه کښ په جار شروع کړو۔ دَ نیږنگیانو نرِ ویره پیدا شوه۔ دَ سرحد حکومت اونیوؤ۔ درے کاله ئے قید کړو۔ لیکن بیائے په درونه ضمانت پریښو۔ حاجی فضلِ واحد پیر دَترنگزو حاجی صاحبؒ بانډِ مشهور شو۔ دَپیښور ضلع کښ دَخراب رسمونو او رواجونو خلافِ جهاد شروع کړو مثلاً په لور خور روپئ آخستل ئے بند کړه۔ په زدکونو وَدونه ئے شرعی طور سره دَخلقو اوکړهٔ۔ خلق ئے دَلکھونو روپو دَ

قرضد ادونه بچ کړه - دُسُنی مذهب سخت پابند وو - هغه وُرزو کښې چه خوک به قادیانی شو - حاجی صاحبؒ به ورپسې سره دَ خپلو مُریدانو تلو - هغه باندِ به ئې دَ خلقو په مخکښې کلمه درسته کړه - او بیا به تِرِ وابس را تلو - ځکه چه دَ قادیانانو برخلاف خلقو دا مشهوره کړې وه چه ذوئ کلمه کښې زیاتی کړیدې - خو چه هغوئ به صحیح کلمه اوویله - حاجی صاحبؒ به تِرِ وابس شو - هغه وُرزو کښې دَ ترنگزو حاجی صاحبؒ دَ بزرگی درز په اطرافو کښې ډیر خور شوې وو - دَ خلقو پرې زخت ډیر اعتقاد پیدا شوې وو او عزت به ئې کولو دَ ډیرې مینې دَ وجې مُریدانو به کټ کښې کرزولو - چرته به چه امر معروف یا نور څه کارله تلو - مریدانو به کټ کښې اوړو - چرته به چه لاړو په زرگونو خلق به ئې لیدو له را تله - دَ هغو آسانتیا دَ پاره به ئې دَ ترنگزو حاجی صاحبؒ کټ په وُنه یا دَ چهت تیرکښې ډیر لوړ دولو چه خلق ئې کتے شی - دې کټ سره به ئې یو تش کټ هم زوړند کړې وو - که دَ چا به ورسره دَ خبرو کولو مطلب وو - هغوئ به

په اَندرپايه دغه کښې له وراوخته - ودسره به ئې خبرے کولے .لکه مُوده کښې يوسفزو- خليلو- مهمندو او محمد زوکښې په زرګونو خلق ئې مُريدان شو-

باباجي صاحب يوسفزو او هشتنګر کښې ديني مدرسے جوړے کړے - دَغه مدرسو جوړولو کښې ورسره محمّد اکبر خادم -او عبد الغفارخان ډيره دلچسپي اخستے وه - دَ يوسفزو علاقے کډرکلي کښې يودارالعلوم جوړکړو- دَدے ماتحت ئې خلويښت مدرسے جوړے کړے - دَ ګډر دارالعلوم کښې دَ مشهورو عالمانو نومونه دادي

(۱) حضرت مولانا شاه رسول صاحب دَ شهباز ګړے (صدر مدرس)

(۲) 〃 〃 عبدالله جان 〃 جلاله

(۳) 〃 〃 ډنډوقا مُلا 〃

(۴) 〃 〃 مياں مُلا 〃 (لاهور صوابي)

(۵) 〃 〃 کالا 〃 (ګډر)

(۶) 〃 〃 عبدالمالک

(۷) 〃 〃 قاري عبدالمنان 〃 (عمرزو)

(۸) حضرت مولانا مرزا گل میاں صاحب

(۹) " " محمود مخفی " (دیر)

(۱۰) " " عبدالعزیز " (عمرزو)

(۱۱) " " تاج محمّد " مدرس و مهتمم دارالعلوم

حاجی صاحب سره دے مدرسو جوړولو کښ عبدالغفار خان او محمد اکبر خادم د چارسدے ډیرے منهے ترهے والے وے حاجی صاحب سره د امر معروف او بنه کارونو په وجه د خلقو مینه محبّت همدردی او اعتقاد ډیر زیات پیدا شهٔ. په کومه ځائے به چه تلو. په شلګونو خلق به ور پسے وو ذکرالهی به ئے کولو څرته به چه لاړو او څه فیصله به ئے چه اوکړه هغه به خلقو منله د حاجی صاحب په برکت په لکهونو خلقو کښ اسلامی جذبه پیدا شوه.

## کوز تهکال کښ دینی مدرسه:-

د ترنګزو حاجی صاحب تعلیمی سرګرمو سره د صوبه سرحد خلقو تعلیم طرف ته توجه شوه. حضرت سنړ اکے ملا (علی احمد)

په کوزتهکال کښې یوه نوې دینی مدرسه جوړه کړه - دے مدرسے جوړولو دَپاره یې خپلے خان صاحب غلام حیدرخان الکوزی (بابو حیدر) ورکړے - هغه وُرزو کښې غلام حیدرخان په شبقدر قلعه کښې دَ نوے آبادئ کولو ټهیکه آخستے وه - دَ هغه قلعه نوے دروازے هم دے مدرسے له مفت ورکړے - او دَ هٔ وُراره عبدالرشید خان الکوزی ترِ لاس نیوه اوکړه -

## دارالعلوم اسلامیه کالج پېښاور:-

دَ حاجی صاحب تعلیمی سرگرمو ته چه حکومت سرحد اوکته او دَ عوامو دَ جذباتو اندازه ئے اولګوله نو پېښاور کښې دَ دارالعلوم جوړولو خیال ئے پیدا شو - قاضی عبدالاکبر - سر صاحبزاده عبدالقیوم - سر جارج روس کیپل - غلام حیدرخان الکوزی میاں رحیم شاه کاکاخیل - غلام سرورخان الکوزی - خوشحال خان دَسواتو - حاجی محبت خان دَ پړانګو او عبدالمجید خان دَ تنګی دارالعلوم اسلامیه (اسلامیه کالج پېښاور) جوړولو کښې دَ زړهٔ دَ اخلاصه کار اوکړو - او په زړګونو چندے ورکړے

دَ صوبه سرحد دَ نوابانو۔ غټانو۔ زمیندارو۔ نوکر پیشه او عوامو نه ئې چندے دَ دارالعلوم جوړه ولو دَ پاره ټولے کړے۔ دَ خیبر په سړك برتهکال نه ګر پرېوا ته خواته یو میل بیرته ځائ دَ دار العلوم اسلامیه دَ پاره خوښ کړے شو۔ دغه ځا ۹۱۶ کنال ۱۷ مرلے مزکه دَ سپینه وړئ او برتهکال رقبه کښ واخسته ۲۱ مارچ سنه ۱۹۱۲ء دَ دارالعلوم (اسلامیه کالج پېښاور) دَ افتتاح وُرز مقرر شوه۔ دَ صوبه سرحد نوابانو غټانو عالمانو سیدانو سپین ږیرو او بزرګانو ته دعوت نامے اولیږلے شوے۔ فیصله دا او شوه چه دَ دارالعلوم اسلامیه خښته به دَ ترنګزو حاجی صاحب (فضل واحد) ږدی۔ حاجی صاحبؒ سره دغه سلسله کښ منتظمینو اولیدهٔ۔ دَ افتتاح په وُرز دَ ترنګزو حاجی صاحبؒ سره دَ خپلو یو څو مُریدانو دَ دارالعلوم اسلامیه پېښاور خښتے کېښودو دَ پاره راغے۔ حاجی صاحبؒ دَ پاره منتظمینو دَ سپینو زرو کرنډے دوه جوړه کړے وو۔ دَ سنګ بُنیاد کېښودو نه مخکښ دَ طرو سید عبدالله شاه عباسی دَ تلاوت قرآن

شریف نه پس یو جامعه تقریر اوکړو. دَ تقریر نه سر صاحبزاده عبد القیوم او کرنیل اسلم خان سدوزی دَ ترنګزو حاجی صاحبؒ نه باتلی کېښ چونه او دَ سپینو زرو کرنډۍ ځنګښ کړه. حاجی صاحب کلمه دُرسته کړه کرنډۍ کښ ئے چونه واخسته او دَ دار العلوم ډوبۍ خښته ئے اولګوله. دعاءِ خیر اوشوه. سیټهه کریم بخش په حاضرینو میټهائی سره دَ چایو اوو ویشله. سیدانو او ملایانو صاحبانو له ئے لونګیانی ورکړے. دَ دے نه پس حاجی صاحب بخپل توراس سورشه برتهکال ته سره دَ خپلو مُریدانو راغے. بیا ترنګزو ته لاړو. کوم ځائ چه حاجی صاحب دَ دار العلوم سنګ بُنیاد اېښے وو. هلته دَ پېښور سیټهه کریم بخش په خپل خرڅ دَ مهابت خان دَ جماعت په ډول یو ښکلے جماعت جوړ کړو حاجی صاحب چه ترنګزو ته لاړو نو دَ ترنګزو او اتمانزو منځګښ ئے یو لوئ پوخ جماعت جوړ کړو. ورسره ئے دَ طالبانو دَ پاره کوټے هم جوړے کړے.

سنہ ۱۹۱۴ء جرمن لام کښې چه ترکو فرنګیانو په جنګ کوتے پورے کړے۔ دَ ترکو شیخ الاسلام چه دَ جهاد فتویٰ ورکړه چه چرته مسلمان وی۔ په هغه جهاد فرض دے۔ دَ دغه فتوے اثر دَ هندوستان په مسلمانانو هم اوشو۔ دَ صوبۂ سرحد لوئی اوجیّد عالم مولٰنا سیف الرحمٰن الکوزی دیوبند کښې دَ فرنګیانو خلاف دَ جهاد فتوی ورکړه۔ شیخ الهند صدر مدرس دیوبند حضرت محمود الحسن صاحب هم دَ جهاد فتویٰ ورکړه۔ دغه وُرزو کښې دَ حاجی صاحبؒ دَ حزب اللّٰه تحریک ښه زور کښې وو۔ دَ دغه تحریک کښې ورسره دَ پیښاور ښهر حکیم محمّد اسلم سنجری هم شامل شوے وو۔ او یو اِعتباری رکن وو۔ مولانا ابوالکلام آزاد او دا سے نورو هندوستانی ذمه وارو لیډرانو سره خط وکتابت به دَ حکیم محمّد اسلم سنجری په لاس کیدو۔ دَ جهاد سلسله کښې حضرت مولانا سیف الرحمٰن الکوزی دَ دیوبند نه سرحد ته راغے۔ ترنګزو کښې حاجی صاحب (فضل واحدؒ) سره ئے دَ جهاد بابت مشوره اوکړه۔ دَ هندوستان

دَ حریت پسند و خلقو سازش نه ئے خبر کړو. دَ ترنګزو حاجی صاحبؒ
دوی سره دے مذهبی کارکنی رائے یو کړه. دَ اِسلام دَ پاره
ملاؤ وتړله او دَ فیرنګیانو خلاف پراپیګنډه شروع کړه. دَ
فیرنګیانو حاجی صاحب نه سخته خطره پیدا شوه. دَ فیرنګیانو
حکومت دا بیته فیصله اوکړه چه فضل واحد دَ ترنګزو
حاجی صاحبؒ، نه به دروند ضمانت واخلو دَ ضمانت میعاد ئے
چه پوره کیږی بیا به ئے تازه کوو. اوکه ضمانت ورکولو نه
ئے اِنکار اوکړو نو بیا به ئے بندی کړو. دَ قدرت کاروونه هم
څه عجیبه وی. دَ پیښاور دَ ډپټی کمشنر دَ دفتر نه دَ ترنګزو
حاجی صاحبؒ دَ نیو وخبر مخے سره حاجی صاحبؒ ته دَ باړے
دَ مهمند واعظم خان چه دَ فیرنګی نوکر وو. پیټ اورسولو
حاجی صاحبؒ خپل څوئ فضل معبود سره دَ خپلے خیلخانے
دَ مردان په لاره بونیر ته پټ واستولو. او اعلان ئے اوکړو
چه مور پسے خیرات کوم. دے خیرات له ئے خپل مریدان. خوا
خوګی دوستان اوغوښته. دَ خپل مطلب خلق ئے چه څه وو

هغوی سره ئے ښه صلاح اوکړه - په ټولو میلمنو ئے په ښه شان سره روټئ اوخوړوله - ما سخوتن مونځ جمع سره اوکړو - دَ خلقونه ئے رخصت واخستو، کورته نئوتو - چه خلق خواره شو شو مه دم شوه - دَ ترنگزو حاجی صاحبؒ دَ کور دَ شاله خوا دَ دروازے دَ خپلو ځامنو بادشاه گل فضل اکبرؒ او فضل شاهؒ سره دَ کوره دَ هجرت په نیت اووتو - حاجی صاحبؒ په خپلے پوړکے اسپے سور شو او ځامن ئے په آسونو سواره شو - دَ میاں خان سنګاؤ په لاره بونیر ته روان شو - دوی چه ټوله شپه سفر اوکړو سحر خړه کښ چه دَ درګئ سړک ته اورسیدۀ - په دغه وخت کښ دَ نیونګیانو رساله په سړک تیریده - لیکن دَ رسالے خلق پرِ خدای پاک ړانده کانړه کړۀ - چا هم پرے غرض اونکړو - رساله چه تیره شوه دوی لوند خوړ کلی ته روان شو - لوند خوړ ته چه رسیدل بیا سپین صبا دو - دوی دَ لوند خوړ نه په تلوار دَ بونیر غرونو ته روان شو - دغه وخت حاجی صاحبؒ ته یو آس لاره کښ مړ شو - دَ خدائ پاک په فضل وکرم حاجی صاحبؒ سره دَ خپلو ځامنو

صحیح سلامت دَ بونیر طو طیالے علاقے ته اورسیدل - دَ دوڑے مبارکه میاشت را او ختنه - حاجی صاحبؒ دا ټوله میاشت یادِ الٰهی او تبلیغِ جهاد کښ تیره کړه - بونیر کښ هسے هم دَ حاجی صاحبؒ مُریدان ډیر وو - هغوئ دَ جهاد سلسله کښ ورسره خط وکتابت کړے وو - حاجی صاحبؒ سره ملاتړ زیات شو - دَ حاجی صاحبؒ جهاد کښ لوئ غرض دا وو چه دَ فیرنګیانو فوجی طاقت کمزورے کړی چه ترکو ته دَ فیرنګیانو وهل آسان شی - حاجی صاحب دَ غلوروزن دو غازیانو لښکر په فیرنګیانو دَ حملے دَپاره تیار کړو - دَ صوبه سرحد چیف کمشنر سر جارج روس کیپل دَ سپین بزیرو یوه جرګه بونیر ته واستوله - دَ صلح پوره اختیارات ئے ورله ورکړه چه تاسو دَ ترنګزو حاجی صاحب په څه رضا کړو هغه به حکومت ته منظور وی - دَ دغه جرګه کښ دَ عمرزو خان بهادر سعد الله خان دَ برټکال نواب دوست محمد خان هم وو - دا جرګه حاجی صاحب له ورغه - ورته ئے اُووے چه څمونږ دا جرګه دَ سرحد حکومت راستولے ده چه د ترنګزو حاجی صاحبؒ په څه رضا کیږی رضا کړئ پیښاور ته ئے راولئ - دَ سرحد

حکومت ته به ستاسو فیصله منظوره وی - دغه وخت کښ حاجی صاحبؒ سره حضرت مولانا سیف الرحمان الکوزے موجود وو - مولانا صاحب دَدے جرگے وړاندے دَ نصیحت نه یک وعظ اوکړو - ورته ئے اُووے چه تاسو له شرم نه دے چې ستاسو او ځموږ مشرانو کفار و سره به غزا گانے کولے او تاسو موږ اوس دَ تیارے غزا نه منعه کوئ - که فیرنگیان موږ رضا کول غواړی نو هندوستان دِ پریږدی خپل ملک انگلستان ته دِ ځی -

دے جرگے چه وعظ واوریدو ستړکے ئے دَ او ښکو ډکے شوے بینوا پیښاور ته واپس راغله - او دَ ترنګزو حاجی صاحب خپلو ملګرو سره دا فیصله اوکړه چه دَ اختر په دویمه وُرځ به دَ فیرنګیانو دَ مردان په چهاؤنړۍ حمله کوُو - دَ فیرنګیانو مخبرکل ښتنی چه دَ غازیانو په لښکر کښ وو - فیرنګیانو ته ئے دَ حملے خبر اورسولو - دَ صوبه سرحد چیف کمشنر سر جارج روس کیپل خپل فوځ ستر کاوئ کښ او ته مخے سره واستولو - په غازیانو حمله کښ رو ببے شو - دَ اختر نه پس درے ورځے لا نیا بانیو دَ غازیانو لښکر دَ فیرنګیانو تربیت یافته فوځ سره سخته مقابله لاس

په لاس اوکړه - حکیم محمد اسلم سنجرې چه دغه جنګ کښې موجود وو هغه

دا نه وئیلی وُو چه دغه وخت کښې د ترنګزو حاجی صاحبؒ په مصلیٰ ناست وو

دَ غازیانو دَ جنګ نقشه ئې جوړوله کله به ئې نا کهانه تُوره لاس کښې واخسته

کله تمانچه دَم به ئې پړ وا چولو او غازیانو ته به ئې دَ حملے حکم ورکړو۔

دَ اُتمانزو مولانا عبدالعزیز به غازیانو ته دَ حاجی صاحبؒ هدایات

رسول - دے غزا کښې دَ هندوستانی مجاهدینو اولاد هم شامل وو۔

دَ دوی یو ټولی ته حاجی صاحبؒ یوه مورچه حواله کړه چه دَ دشمن لښکر

درنه راتیر پرے نه شی - دوی سره دَ ۱۸۵۷ء دَ زمانے درے ذړے ورکوټی

توپے هم وے - دوی دَ دشمن لښکر سره سخته مقابله اوکړه او ټولے پرے

جنګیدل چه ټول شهیدان شو - لیکن دشمن ئې مخکښې کیدلو ته پرے نخو۔

دَ دوی مشر رحمت الله صاحب دغه وخت کښې حاجی صاحبؒ سره جنګی

مصلحت کولو - دَ حاجی صاحبؒ لښکر فیرنګیانو سره ۲۷ وُرزے مقابله

اوکړه - آخر کښې دَ بونیر ملکان حاجی صاحبؒ له په جرګه وَرغه ورته

ئې اُووے چمونږ دَ کوری لښکر دے - غریبان یُو دَ فیرنګیانو شاهی لښکر

سره جنګ نه شو کولے - فیرنګیانو مونږ سره صُلحے کولو ته تیار دی - که ستاسو

خوښه وی صُلح به ورسره اوکړو۔ حاجي صاحب دوئ له دَصُلح اجازت ورکړو او پخپله سوات ته لاړو۔ دُ فيرنګيانو خلاف ئے دَ جهاد پراسکيمونو جاري اوساتله۔ سوات کښې ورله استوګنے خوند ورنکړو باجوړ ته لاړو هلته ګړے نوم کلي کښې ديره شو۔ قندهارو او صافي قبيلو بيعت اوکړو۔ استوګنے دَ پاره ئے ورله يو قلعه ورکړه۔ حاجي صاحب شپږ مياشتے باجوړ کښې تيرے کړے دغه وُرزو کښې دَ صوبه سرحد په ښلکو نو هغه کسانو ئے لاس نيوه اوکړه کوم چه فيرنګيانو په سرکاري علاقو کښې بند کړي وُو۔

دَ باجوړه حاجي صاحب مهمند وته راغے۔ مهمند قوم ئے ډير عزت اوکړه۔ غوزے مهمند نامے خيل مذهبي پيشوا مقرر کړو۔ دَ کلي جوړولو دَ پاره ئے ورله زمکه ورکړه۔ دے زمکه کښې حاجي صاحب يو جماعت يوه قلعه او کورونه جوړ کړل۔ په دے غوله آبادي حاجي صاحب غازي آباد نوم کيښودو۔ حضرت حاجي صاحب دُ مهمند و په ملک کښې امر معروف شروع کړو۔ په لږه موده کښې په زرګونو مريدان شو۔ امير کابل حبيب الله خان سره ئے تعلقات پيدا کړل۔

د جرمن لام کښې ترک او جرمنيان فيرنګيانو ته ګډکرې شوی دَو۔ او فيرنګيانو سره روس او فرانس ملاتړ وَو۔ د فيرنګيانو فوجي طاقت حاجي صاحبؒ د سرحد د قبائلو په لښکر کمزورې کولو په وګوام جاری ساتلے وو۔ سنه ۱۹۱۶ء کښې حاجي صاحبؒ د مهمند و لښکر جمع کړو او د شبقدر په قلعه ئے حمله اوکړه۔ فيرنګيانو ټول مهمند بلاکيډ کړه۔ څلورسوه ګزه او بعضے ځائ کښې ئے اته سوه ګزه فاصلے بانډې برجونه د ميچنئ پل نه د آبازو پله ½ ۱۷ ميله فاصله کښې جوړ کړه۔ دے برجونو کښې فوځيان کيښول، ورسره ئے د آبازو نه تر ميچنئ پُله اُووه ګزه پلن د ازغو د تارونو ديوال جوړ کړو۔ دغه ديوال سره ئے د بجلئ تارونه هم بوتله۔ چه څوک به ورته نزدے کيدو دے تارونو به نيوو۔ حاجي صاحبؒ د شپږو زرو غازيانو لښکر ځان سره کړو او د فيرنګيانو په فوځونو ئے شبقدر سره دوباره حمله اوکړه۔ فيرنګيانو په دے لښکر د توپو او هوائي جهازونو سخته بمباري اوکړه۔ رساله او پياده فوځ ئے مقابلے نه ور او وليستو۔ غازيانو د ميچنئ نهر په غاړه رسالے سره لاس په لاس جنګ اوکړو۔ دغه رساله ئے تقريباً ټوله تباه کړه د غازيانو

لړ دې ېکښې دوا جان اکبر خوګه ښیل جان ځان غلام جان شیر علي خان سید میران میاں خان حضرت خان عیسې خیل شهیدان شو۔ دې شهیدانو کښې دوا جان خوګه خیل تکړه ځوان وو۔ ده یو انګریز افسر دَ اس نه جنګ کښې راوغورزولو و رسره په پړزولو شو۔ دَ هغه دَ پاسه چه کیناستو هغه دَ لاندې نه په تماچه اوو یشتلو۔ دوا جان په چاړه اووالو۔ دوا ړه یو ځائ ساه ورکړه۔

دَ تړکو او دَ فیرنګیانو جنګ ښه زور کښې وو دَ کوهاټ ځنګل خیلو کلي سرور شاعر چه یو لوئ عالم او قومي سړے وو دا چاربیته اولیکله انګریزانو ورپسې دَ دے چاربیتې په وجه وارنټ اوولیستو۔ دَ دے درے نه او تښتید و۔ دَ ده دا چار بیته عبد الجبار درزي یاده کړے وه۔ دَ هغه نه ما ته را اورسیده۔ هغه دا ده :-

## زنځیرۍ چاربیته دَ جرمن دَ لام

زور دَ کافرو په سلطان راغے
وخت دَ مهدي آخر زمان راغے

شاه دب دب د روم مدام او سه　　فرانس او روس د ده غلام او سه
کافرو زور په طرابلس اوکړلو　　اټلی ظالم داسے هوس اوکړلو
ذرے داخل یکښ لښکر کړلو　　سلطان ته پسے پرے خبر کړلو
سلطان فرمان د کمکس وکړلو　　قسم د ترکو هر نفس وکړلو
هر یو ځان سند د سکندر کړلو　　کوچ ئے د مصر په بندر کړلو
عرض ئے د مصر په مجلس وکړلو　　لانه کچنر باندے وس وکړلو
لاره ئے کړه بنده مهم کران داغے
زور د کافرو په سلطان راغے
په مصر بند د ترکو فوځ شه　　په مخ رے سم د اوښکو موج شه
لانه کچنر دوزخ مقام او سه
فرانس او روس د ده غلام او سه
کچنر پرے نه ښو دو لښکر د ترکو　　والیس د مصر ځي انسر د ترکو
سپاهیان د ترکو په ارمان ځي　　د انور بیک اوښکے باران ځي
ځان ئے فقیر کړو دلاور د ترکو　　جرنیل عظیم شه قلندر د ترکو
پټ و بادشاه مرد میدان ځي　　په غر دریاب په بیابان ځي

میدان ته ورغے بهادر دَ ترکو        خدایه آبداد لوے خنجر د ترکو
انور بیکؓ ستا په نوم قربان راغے
زور دَ کافرو په سلطان راغے
جرنیل دَربؓ په نامه سر ورکړو        شیخ سنوسیؒ ته ئے خبر ورکړو
جنګړه اوچته ستامدام اوسه
فرانس او روس دَ ده غلام اوسه
واخله جنړه کفر وزر وهینه        اهلِ مسلم بانډِ سر وهینه
هر یو مُرید له تیر تفنګ ورکړه        فتوی دَ قتل دَ پرنګ ورکړه
سنوسیؒ وے ذره مِ نشتر وهینه        سحر صبا چه ستر که سر وهینه
قاصده اخه حکم دَ جنګ ورکړه        ته دے مومن چه جنګ کښ سنګ دکړه
هر یو مُرید دَ شیخ تهتر وهینه        روان شپږ لکه سمه غز وهینه
هر یو غازی په لاس سنان راغے
زور دَ کافرو په سلطان راغے
په قتل عام ئے کوتے پورے کړے        جنړے دَ کفر ئے نسکورے کړے
دَ خدائے لعنت په کفر قام اوسه
فرانس او روس دَ ده غلام اوسه

دَخدائ لعنت په دے تدبیر اوسه په اټلی کِنګ هم په وزیر اوسه
جنګ دَ زمرو په ګیدړانو کوی ښکار دَ بازونو په کارغانو کوی
غازیان پرے راغله هوا ګیر هزار قیدِ کوره کړه په زنځیر هزار
سخته حملے پرِ دَ شیرانو کوی لوټ په اسباب دَ کافرانو کوی
توپے ټوپک تیغونه تیر هزار بل ئے اُسونه کړل اَسیر هزار

په اټلی کِنګ خبر طوفان راغے
زور دَ کافرو په سلطان راغے

دَ نوحُ معلوم ئے څه نشان نه شو په طرابلس کامیاب شیطان نه شو

لکه دے ورک دا سے ګمنام اوسه
فرانس او روس دَدهٔ غلام اوسه

لکه اټلی هسے بلقان ورک شه ما نتی نګرو سروے یونان ورک شه
دَ روس منحوس راج دِ تاراج کړی رب جلّ پرِ دِ جاری دَ روم خراج کړی رب جلّ
تابع دَ ښځو ګورګان ورک شه ذات دَ بیزو ښنه ئے چشمان ورک شه
نه دی مشکل که ئے محتاج کړی رب جلّ ورنه په سر دَ خاورو تاج کړی رب جلّ
ورک دِ شی هغه بدزبان ورک شه چه وائی خوک مسلمانان ورک شه

په اسویلوم زړه سوزان راغې
زور د کافرو په سلطان راغې

کافر په روم باندې زړه ورشو خلو
لکه چینغ په زړه کښې ستړ شو خلو

بدنام شو مړه عقل بې خام اوسه
فرانس او روس د ده غلام اوسه

په نارشو مړه عجب اسرار وینم
قهر غضب پرې د غفار وینم

میرې د دوی په وینو سرې شوې
غنیم شکر کمزل هیرې شوې

فوج د بلغار په توره غار وینم
شپږ میله پلن د دوی انبار وینم

سروې یونان جسې سپیرې شوې
د عزرائیل ورته نعرې شوې

مانتې نکړو، په استغفار وینم
تیغ د ترکانو چمکدار وینم

زکه توتې پرې کدو خان راغې
زور د کافرو په سلطان راغې

بلقان لښکر د کوه الکانو لری
اُمید د فتح د ترکانو لری

تش د لعین د طمع جام اوسه
فرانس او روم د ده غلام اوسه

تش جام د کفر بے عزت کوی خوند — رجیم چه خوشبوی پرے لعنت کوی خوند

انور د لاسه م لتاړ ؤ لیده — په پایه تخت م دوی ویجاړ ؤ لیده

د اسلام فتح او نصرت کوی خوند — لکه دلبر سره صحبت کوی خوند

محمود شوکت نړم عم لاړ ؤ لیده — د مقابل کورم ویجاړ ؤ لیده

د عبدالله جبرئیل صفت کوی خوند — بل ئے مختار بانډ رحمت کوی خوند

څکه غلیم په ځونه وران داغ

ډور د کاڼو په سلطان داغے

دا یه د رب جل لره ثنا سرورا! — دشمن کوی دوړ وینا سرورا!

خپل دین اسلام ته په سلام اوسه

فرانس او روس د ده غلام اوسه

## د افغانستان جنګ :-

سنه ۱۹۱۹ء کښں چه امیر کابل حبیب الله خان شهید شو۔ او د هغه ځوی امان الله خان د افغانستان امیر شو۔ انګریزانو هم دے امیر تسلیم کړو۔ امیر کابل امان الله خان چه د افغانستان قول انتظام ٹھیک کړو په خان ئے اعتبار پیدا

شو. بیائے دَ بادشاهئ اِعلان اوکړو. فیرنګیانو بانډ دا خبره بدّه اولګیده. جنګ ته تیارشو. دَ افغانستان لښکرے ډکے اوکرم پاره چنار ته دَ فیرنګیانو مقابلے دَ پاره راغے. دَ ترنګزو حاجي صاحب دَ مهمندو لښکرخان سره کړو او په شبقدر قلعے ئے حمله اوکړه. دے حمله کښې حاجي صاحبؒ سره دَ افغانستان یو پلټن هم وه. دَ فیرنګیانو فوځ دَ مهمندو مقابلے ته راالوتو. سبحان خوړ کښې سره مقابله شو. دَ مهمندو لښکر دَ پیښاور بالاحصار قلعه ته او نښورسیدے په ډکه دَ افغانستان لښکر دَ صالح محمّد خان سپه سالار دَ ناپوهئ دَ وجې نه شکست اوخوړ. دَ فیرنګیانو فوځ ډکه اونیوه. دَ جلال آباد آخستو ته ئے تیاری شروع کړه. دَ کابلیانو پلټن شبقدر نه افغانستان ته واپس لاړه. حاجي صاحبؒ دَ مهمندو لښکر سره هزارناؤ ته دَ ډکے آخستو دَ پاره لاړو. ډکے باندې ئے حمله اوکړه. دَ مخکښې تګ نه دَ فیرنګیانو فوځ اِیسار کړو. دَ مهمندو غازیانو اودَ فیرنګی دَ فوځ مقابله به اکثر باسول کښې کیده. دَ غازیانو خوراک دَ پاره دَ کابل نه سړی سرروزانه نیم سیرے راتلو. لیکن دَ

سامان ډ او ډېر و اِنتظام ټهیک نه وو۔ غازیان به اکثر د رې د رې ورزې نهر وو۔ دُ غازیانو نصیب روستو په دې بنه شو چه غنم به پخيدو شو۔ غازیانو به غنم وُريتول هغه به ئې خوړل۔ یو ځائ کښې دَ فيرنګی دَ لښکر او دَ غازیانو دا سې سخته جګړه شروع شوه چه غازیانو سره دَ خوراک هرڅه خلاص شو۔ دغه وخت کښې حاجی صاحب خپله آسپه حلاله کړه او په غازیانو ئې اوخوړوله۔ دغه جګړه کښې قاضی ګل احمد صاحب قاری عبد المستعان۔ محمود سنجری دَ بابړے ملا صاحبځوئ او بادشاه ګل فضل اکبر ډیره مړا نه کړے وه۔ دَ مهمند و لښکر په دګه فیرنګیانو سره تر هغې جنګیدو تر څو چه فیرنګیانو صلح نه وه کړے۔ فیرنګیانو غازی امان الله خان دَ افغانستان بادشاه تسلیم کړو۔ خپل فوځونه ئې پیښاور ته واپس راوستنه۔ اعلحضرت غازی امان الله خان کابل کښې لوئ دربار اوکړو۔ چا چه دَ افغانستان دَ استقلال جنګ کښې بهادری کړے وے هغوئ له ئې انعامونه خلعتونه او زمکے ورکړے۔ دغه دربار ته ئې حاجی صاحبؒ هم راغوښتے وو۔ ورله ئې ډیره زمکه ورکړه لیکن دَ ترنګزو حاجی صاحبؒ زمکے آخستونه اِنکار اوکړو۔ دے زهٔ

فقیر سړے یم - زمکے مِ نه دی پکار - بیا ورله دَ افغانستان بادشاه اعلیحضرت غازی امان الله خان ، تنکر دَپاره ۱۲۰۰۰ روپیئ دَکال مقرر کړے

دَهندوستان دَ مسلمانانو دَ افغانستان بادشاه سره ډیره مینه محبّت او همدردی پیدا اشوه - دَهندوستان اوسیدونکو سره فیرنګیانو چه دَآزادئ بابت وعده کړے وه هغه انګریزانو دَجنګ عظیم نه پس پوره نکړه - دَهندوستان عالمانو دا فتوی ورکړه چه هندوستان دارالحرب دے - دے ملک نه اوس هجرت پکار دے - دَهندوستان زرګونو خلقو قبائیلو او افغانستان ته هجرت اوکړو - دغه هجرت پورے دَ دیګی عبدالرحیم شاعر لاندنئ چاربیته جوړه کړیده :-

## دَهجرت چاربیته

شاګرده ما خبر که - دا خلق ولے ژاړی
اخیره زمانه شوه په هر چا راغے خفګان په هندو په مسلمان
استاذه را جواب خبر شه په شتاب ځایوئ که په حساب

کافر دی جمع شوی اوس به دے بانڈ باور که

شا کړه ده ما خبر که

دَ کافرو راغے زور خاونده په هر لور ژړا ده کور په کور

چا بیره خوژړا ده چه مکه دَ ربؐ غواړی

دا خلق زکه ژاړی

مکے له حق کفار په هیچا نه دی ایسار ورخیږی په تلوار

دا نخے دَ قیامت دی هر سړے دے په سرزان

په هندو په مسلمان

دا نخ دَ قیامت برجونه دی اوچت هر چا کړے هجرت

په صدق مسلمان شه بنه دین دَ پیغمبرؐ که

شا کړه ده ما خبر که

شه په صدق مسلمان روزی دِ شه ایمان جنت کښ شه مکان

دَ لاسه دَ فرنګ خو هر سړے غم کښ لتاړی

دا خلق زکه ژاړی

دَ فرنګ فوځونه دیر هر سړے دِ غواړی خیر حکمونه ئے کړه بربیر

کابل ته دا روان دے هم پنجاب او هندوستان
هندو که مسلمان

هندوستان کښې چه ژړاده خاوند ده څه بلا ده د کومه راپیدا ده
کاغذ ئے وو لیکلے چه امیر صاحب له ورکه
شاکړه ده ما خبرکه

د امیر صاحب کاغذ څما وو دا عرض زیاتیږی مرض
خبر پرنیږ نکیان شو مخ په بره کړے لاړے
دا خلق زکه ژاړی

کړے لاړے مخ په بره تیر شوی دی له سره اوس څی له پیښاوره
سر کند په پیښاور د تهکال وو رضا خان
هندو که مسلمان

رضا خان د کل په شان راغلی وو دا جهان تک تورے وو نشان
پرے لیکلے بسم الله وه ښه صفت سراسر که
شاکړه ده ما خبرکه

صفت کو وښهریانو په ښهر کښې د غازیانو د کلونو پرے باران وو

په سناد د پېښاور کښې

نرنه خلق وو چاپېره  قصه مې اوکړه پوره  ونلی ؤو د شمیره
عزت ئې ورله ورکړه شو داخل په خراسان
هند وکه مُسلمان

عزت د هغوئ کیږی  نشانِ ښکاره کیږی  امیر صاحب یادیږی
که والئ عبدالرحیم چه لیږلې دے نه نور سفر که
شاکرده ځان خبر که

لیږلے دے نه کړو سفر  سرے د هشت نګر  بېشانه وو زړه ور
په ملک د سرحدی کښې انګریزو پښتنے ووهه کانړی
داخلق زکه ژاړی

دلاسه د فرنګ  مخلوق واړه وو تنګ  ځوکِ نشته ئې د جنګ
ورځم فقیر بابا له خاص ریګی کښې مې مکان
هند وکه مسلمان

سنه ۱۹۲۳ء کښې د مهمند وا ود انګریزانو منځکښې جنګ جوړ شو - د

مهمند دَ غازیانو سرلښکر دَ ترنګزو حاجي صاحب وو۔ فیرنګیانو جنګ اوګډ نه کړو۔ مهمندو سره ئې ژر صلحه اوکړه۔

سنه ۱۹۲۶ء کښې چه فیرنګیانو په زور مهمند وعلاقه کښې سړک تیرولو نو دَ ترنګزو حاجي صاحبؒ دَ فیرنګیانو خلاف دَ جهاد اِعلان اوکړو۔ په فیرنګیانو ئې حمله اوکړه۔ دَ فیرنګیانو پروګرام ئې تس نس کړو۔ فیرنګیانو خپل فوځونه پیښاور ته واپس راګوزکړل۔

سنه ۱۹۲۷ء کښې دَ النګار فقیر (علی نګر) دَ انګریزانو خلاف دَ جهاد اعلان اوکړو۔ ۲۰۰۰ دَ مهمندو لښکرئې ځان سره کړو دَ ترنګزو حاجي صاحبؒ هم ورسره ملا اوتړله۔ دَ انګریزانو په سرحد ئې حمله اوکړه۔ فیرنګیانو ډیر فوځ مقابلې دَپاره دَشبقدر له ډډې ورا ولیږلو۔ غازیانو ورسره ښه مقابله اوکړه۔ دے ځل دَ فیرنګیانو فوځ دَ هندوستان هندوان مسلمانان ډیرزیات وُو۔ دَغازیانو خلاف به جنګیدل۔ دَ ترنګزو حاجي صاحبؒ پوښتنه اوکړه چه دا مسلمانان غازیان ولے وژنی۔ موږ خو دَوی رونړه

یُو۔ دَ فیرنگیانو دښمنان یُو۔ چاورته اووے صاحبؒ! دَ خپیتے دَپاره جنګ کوی۔ حاجی صاحبؒ له په دوئ ډیر افسوس داغے۔ وے خدائ تعالیٰ دِ په دوئ دَ قحطئ مُلخان راولی چه خپل رازق او پیژنی۔ دَدے غزانه پس خدائ پاک ته به داسے منظوره وه په هندوستان دَ قحطئ ملخان راغنه فصلونه ئے ټول تباه کړل۔ وُنو نه ئے ورلیسے پټے هم اوخوړے۔ دغه ملخانو پورے تپه خلیل کښ دَ ریګی کلی عبد الرحیم شاعرچه په لیک لوستل نه پوهیږی لاندِنئ چاربیته لیکلے ده:۔

# ملخان

ملخ راغنه دَپاسه۔ توبے خدائ دَ اوباسه

په حکم دَ الله تعالیٰ سره وطن واړه کسکر شو

هرڅوک تِرِنه خبر شو

که راغنه ملخان ۔ مخلوق ئے کړه تالان کوی داسے تاوان

په فصل راګیا شو سمد ستی دَ زړه دَ اخلاص

ملخ راغنهٔ دَپاسه

په فضل دی لګیا    سرګنده یا په غلا    په حکم د مولا

ښکاره په هندوستان په پېښور شو

هر څوک ترِ نه خبر شو

هندوستان کښې ګډه شور    نعرې دی کور په کور    زیاتی دی په لاهور

انګریز خو حکم ورکه قلبه ور پسې اوباسه

ملنګ راغنه د پاسه

په حکم د سرکار    ډپټی او نمبردار    قلبه او زمینداران

سره د تحصیلداره هر سړې په چغو سر شو

هر څوک ترِ نه خبر شو

چه چرته تحصیلدار وی    قول عمرې په دا روی    هر چا ته پیر په تاروی

د هاؤ ستې خولاړې تحصیلدار سم دلاسه

ملنګ راغنه د پاسه

تحصیل کښې شو لو جمعه    هیڅوک نه شو بې عمله    پراته وو غزه په سمه

د اوله خوړې ها بیا په توپونو اوسې پر شو

هر څوک ترِ نه خبر شو

دَ اوله خو هم هاوے　که خنګه بے بهاوے　په حکم دَ مولاوے

که وائی عبدالرحیم چه زهٔ خالی یم دَ لباسه

مسلح راغنه دَ پاسه

نامه م عبدالرحیم　خدائ رحمان دے هم رحیم　بیشکه دے کریم

قدرت لرے خاوند تزنه جوړ دَ ژبے سرشو

هر څوک تزنه خبر شو

۱۹۲۸ء کښ حاجی صاحبؒ ناجوړه شو. دے ناجوړتیا کښ ئے په پښو خه داسے چل اوشو چه ګرځیدو نه پاتے شو. په اس نه شو سوریدے هوا خوری ته به ئے چه کله زړهٔ اوشو نو دَ ایران دَ خانه واده دَ په شان به په زین کړی خر سورتلو. اعلیٰحضرت امان الله خان چه دَ یورپ دَ سیاحت نه واپس افغانستان ته راغے او دَ ملک دَ ترقئ دَ پاره ئے چه نظام نامه جوړوله په کابل کښ سمه ستی شاهی دربار اولګولو دے دربار ته ئے دَ افغانستان بزرګان شیخان عالمان نومه وړی خلق او دَ حکومت لوی لوی افسران رابللی دو. دَ تزنګزو حاجی صاحبؒ ئے هم دَ مهمندو نه راغو ښتے وو. محمود سفری سنه ۱۹۵۰ء

کښې ما نه وئيلی ؤ چه دغه دربار کښې زهٔ هم شریک ؤم - موږ چه دوشپې

دوه ئ اوخوړه نو اعلیحضرت غازی امان اللہ خان په ملاس واچوو-

خان سره ئ روان کړم یوې کوټې ته ئ بوتلم - هلته حضرت فضل واحد

دَ ترنګزو حاجی صاحبؒ یوازې په مصلٰی ناست وو- په عبادت کښې مشغول

ؤ- دَ اعلیحضرت په مرضئ زهٔ حاجی صاحب سره ایسار شوم-

۲۳ر اپریل سنه ۱۹۳۰ء کښې چه فیرنګیانو قصه خوانی پیښاور کښې په

مسلمانانو ګولئ اوچلولې او ۱۰۹ کسان پکښې شهیدان شو نو دَ سرحد

خلقو کښې دَ فیرنګیانو حکومت نه نفرت پید اشو- او دَ دوئ دَ حکومت

دَ تباه کولو سمجهوتې خپلو کښې شروع کړې - په قبائلو کښې دَ فیرنګیانو

خلاف دَ یخوا راسې تبلیغونه به کیدې شو او چه موقعه به کوتو له ورغله

په انګریزانو به ئ حمله کوله - دَ قصه خوانی دَ شهیدانو خبر چه قبائلو

ته اورسیدو نو هغو دَ انګریزانو په سرحداتو حملې اوکړې دغه حملو کښې دَ

مهمندو له د ړې دَ ترنګزو حاجی صاحبؒ دَ مهمندو یو لوئ لښکر

جمع کړو- میچنئ ته ئ دَ غازیانو لښکر واستولو دې لښکر سره دَ ترنګزو

دَ حاجی صاحب مشرځوئ بادشاه ګل فضل اکبر وو- فیرنګیانو نه چه

دَ آزاد قبائل مهمند وُ دَ لښکر پته اولګیدهٔ - مخے سره ئے پرے دَ آسمانی
دَ الوتکو نه بمباری شروع کړه - یو څو بمونه دَ بادشاه ګل صاحبؒ په مورچه
داچولے شو - لاکن پوره نه وه داغلی خدائی پاک صحیح سلامت بچ کړو -
فرنګیانو دَ کوز مهمندو حلیمزو نه اَلتهی مېنهم درکړو که چرے تاسو
دَ حاجی صاحبؒ لښکر دَ خپل وطن نه اُونه ویستو نو ستا سو په کلو
بمباری اوکړو - په داسے حالت کښې حلیمزو دَ حاجی صاحب لښکر له جواب
نه شو ورکولے مجبور وُو - دَ بادشاه ګل لښکر او دَ حاجی صاحبؒ لښکر
غلنئ دَ کنداب، کښی چه یو ځائے شو - دغه وخت کښی فرنګیانو پرے
بے شانه زیاته بمباری اوکړه - دے ځل فرنګیانو مهمندو نه اُووے
چه زهٔ تاسو سره پیاده فوځ نه جنګوم - دے ځل به په تاسو دَ آسمانه یو
یو څه سیکه غورزوم چه بیا دَ غزانوم وانه خلئ - لیکن مهمندو سره
الله تعالیٰ ملګرے وو - دَ انګریزانو بمونو دَ هغوئ جانی او مالی دومره
نقصان اونکړے شو څومره چه دَ فرنګیانو خیال وو - ږو ميے کښی
دَ مهمندو لښکر دَ بمبارونه تنګ راغلے وو - لیکن بیا دوستو بمباری
سره بلد شو چه څنګه به دَ انګریزانو بمباری ختم شوه دوئ به میچنئ

نه وابنکته شو۔ دَ شبقدر فوځ بانډ به ئې حمله اوکړه۔ دَهغوئ دوکانونه به ئې اولوټل۔ لارئ به ئې اوسوزولے بیا به واپس شو۔ په جون سنه ۱۹۳۰ء کښې دَ انګریزانو مخبرانو دَ مهمندو لښکر کښې دا خبر خور کړو چه بادشاه ګل له سرخپوشو روپئ ورکړیدی په ټولو روپئ ئې خیټه اچولے ده۔ تاسو له نه درکوی۔ دے پراپیګنډے په غازیانو کښې دوه ړے پیدا کړے دغه وخت کښې انګریزانو دَ آسمان نه په غازیانو دا سے بمونه غورزول شروع کړل چه پیښاور کښې به ئې آوازونه آوریدے شو۔ او چه کله به ئې ډیر درانه بمونه په مهمندو او غورزول نو پیښور کښې به ئې کورونه اوشړنول۔

دَجون میاشتې آخره کښې النګار فقیر صاحب سره دَ خپله لښکره بانه خیلو مرو سره لاړو۔ حاجی صاحبؒ وارخطا نکړو۔ جنګ ئې با قاعده جاری اوساتلو۔ په شبقدر به ئې با قاعده حملے کولے۔ فرنګیان دَ حاجی صاحبؒ حملو نه تنګ راغله۔ په ۲۳ء فیرنګیانو دَ ملکانو یوه جرګه ورله واستوله۔ دے جرګے ته دَ پیښاور ډپټی کمشنر وئیلی وو چه تاسو حاجی صاحب ته اووائی چه فیرنګیان چه فیرنګیان دَ مسلمانانو مذهب ته

نقصان نه رسوی. او عبدالغفار خان فیرنګیانو صرف په دے خبره بندی کړیدے چه هغه ضمانت فیرنګیانوله نه ورکوو. مونږ تاسو سره جنګ کول نه غواړو. حاجي صاحب د دوی جرګه او منله لښکرے خورے کړے. فیرنګیانو سره حلیمزو اوترکزو قبیلو داوعده اوکړه چه د حاجي صاحب لښکر به دوباره خمونږ د وطن نه په تاسو حمله نه کوی. په ۳۰، اکتوبر حاجي صاحب د مهمند و یو بل لښکر تیار کړو کندا ؤ ته ئے راوستو. لیکن په انګریزانو ئے حمله اونکړه. دا لښکر په ۷، نومبر مهمندو ته واپس لاړو.

۲۳، اپریل سنه ۱۹۳۰ کښې چه قصه خوانئ کښې کولئ چلیدلے وے. د دے واقعے نه یو کال پس د رنګی عبد الرحیم شاعر یوه بوپه چاربیته هغه وخت لیکلے ده. هغه چاربیته کښې یو خو کړئ دادی:-

څه اوردے ګکیدے څلور کنجه دنیا کښې

لښے شوے برسیره سختي خورا غله ډیره زړګی ئې م چا پیره

چه مونږ خو غلامان یو که هر څوک سترګے بینا کړی

څلور کنجه دنیا کښې

که غلامې نه شو مونږ خلاص    دا کار دے د اخلاص    بنا یُسته نوره په لاس

مشین دو چلیدے د هغے او شو یو کال

هر یو د دین مشال

د مشین خلاړه زاړه وو    چا پیره خوګن ادوو    زیاتی کین ی په خوا دو

ډیر دوی کښ شهید ان شو یرجو ړه د خاورو ځلے

څه اور دے لګیدے

شهیدان شو پکښ ډیر    تمام ئے شولو سیر    حُمایه نه شی هیر

پاک رب به جنت ورکړی همیشه بیٔ په تنا کښ

څلور کنمبه دُنیا کښ

تنا کښ بیٔ خوشحاله    قادره سر کماله    خبر شه له دے حاله

بنا یُسته حُورے جنت کښ دی ورکړے رب جمال

هر یو د دین مشال

مولی خو به د هغو کړی چه خپل سری بخښلے

څه اور دے لګیدلے

د خدائ په نامه سر    ورکړے دو پیغمبر    نه وایه الله اکبر

دَ چا دَ پاره تبه ثوک مرشي نمونيا کښې
ثلور کُنجه دنيا کښې

دَ مرګه نهٔ ويرېږي    ځلمي خوروانيږي    غزاله سنباليږي
غازي امان الله وو ربّ ورکړے وو جمال
هر يو دَ دين مشال

دَ لاسه دَ خپل قامه داسے سيک شو لکه خلے
څه اوردے لګيدلے
رعيّت شو په غضب    کار ونه دي دَ ربّ جلّ    قصه ده عجائب
حکومت حُمونږ ظالم شو خدايه ته ئے ذر فنا کړے
ثلور کُنجه دنيا کښې

حکومت شو لوظالم    خفه دے نړِعالَم    دَ ژبے په قلم
نامه مِ عبدالرحيم څه ويناکښې مِ کمال
هر يو دَ دين مشال

سنه ۱۹۳۱ء کښې فيرنګيانو دوباره يو سکيم جوړ کړو چه دُ آزاد
قبائيلو وزيرو محسودو افريدو مهمندو او باجوړ علاقو کښې

پاخه سړکونه جوړکړی چه قبائل قبضه کښې داولی ـ شروع ئے د
مهمندو نه اوکړه ـ حلیمزو او ترګزو کښې ئے روپئ خورے
کړے ـ خان له ئے عوام او ملکانو کښې مګکری پیدا کړل
د حلیمزو لوئ ملک " امیر ملک " چه د صوبه سرحد د لاټ کرنیفتهٔ
صاحب ړومبنے دوست وو او امیر ملک ته ئے رورو ـیلی وو قبضه
کښې راغے ـ امیر ملک کرنیفتهٔ ته اووے چه کنداؤ پورے به سړک
درکړم ـ حاجی صاحبؒ د امیر سازش نه خبر شو ـ امیر ملک له ئے
جرګه واستوله چه قوم سره غداری اونکړے تر قیامته به دے
ناموس د بدووی ـ لیکن امیر ملک او نه منل جرګے له ئے دهوکه
ورکړه چه دا ما پورے خلقو دروغ تړلی دی ـ زهٔ به هیچرے فیرنګیانو
له خپل ملک کښې سړک ورنکړم ـ

سنه ۱۹۳۲ کښې د امیر ملک په صلاح حلیمزو ګنداؤ کښې د بړو
مهمندو پو لوهار د ورانی د پاره قصداً او دوتلو ـ د ماسل خان خوئ
امیر ملک له سړے راواستولو چه دا دِ بنه او نکړه ـ امیر ملک ورته
جواب کښې اووے چه لاس مو خلاص شه چه کولے شے اوکړه ـ

په دے رنګ جواب باندِ مهمند پوئ شو چه امیر ملک ضرور فیرنګیانو سره دَ سړک جوړولو سمجهوته کړیده۔

عثمان خیل قوم حاجی صاحبؒ سره صلاح اوکړه۔ قومی لښکرے جمع کړو۔ دَ امیر ملک په کورئے اور اولګولو۔ امیر ملک دَ صوبه سرحد ګورنر ګونیفتهٔ له راغے چه دوره دادِ وخت دے۔ ګنداؤ ته که سړک خیجے۔ حلیمزی او ترکزی دواړه قومونه سړک درکولو ته تیار دی۔

سنه ۱۹۳۳ء کښ دَ صوبه سرحد ګورنر ګونیفتهٔ دوه بریګیډه مهمند باندے حملے دَپاره واستول۔ دَ فیرنګیانو فوځ امیر ملک پنځو ورزو کښ ګنداؤ ته اورسولو۔ حاجی صاحبؒ او بر مهمند چه دَ امیر په غداری خبر شوه۔ نو حاجی صاحبؒ دَ انګریزانو خلاف دَ جهادِ اعلان اوکړو۔ او لښکرے جمع کړے۔ په ګنداؤ ئے حمله اوکړه۔ فیرنګیانو دَ بر مهمند لښکر دَ امیر ملک په ذریعه په جرګو مرکو ایسار کړو۔ په دغه دوران کښ ۲۵ ورزو کښ ئے ګنداؤ پورے سړک جوړ کړو۔ حاجی صاحبؒ دَ فیرنګیانو په فوځ حمله اوکړه۔ جنګ ئے ورسره بُخت کړو۔ فیرنګیانو دَ افغانستان بادشاه ته اووے چه ځمونږ منځکښ صُلح اوکړه۔ حاجی صاحبؒ دَ افغانستان دَ

بادشاه په صلاح فیرنګیانو سره صلح اوکړه - په دے صلح کښې فیرنګیانو مهمندو ته دا شرط کیښودو چه زه به خپل فوځ کندا ؤ ته اوباسم - تا سو به وروته څه نه وایئ سړک به نه ورانه وئ او انګیز ملک به د وطن نه نه شړئ - دوئ دا خبرے او منلے او انګریزان پیښور ته واپس راغله

سنه ۱۹۳۵ء کښې د کوزو مهمندو خیلو کښې د کندا ؤ د سړک په ټهیکو ورانه راغله - د بر مهمندو خلقو له موقعه په لاس ورغه هغوئ هسے هم د دے سړک برخلاف وو هغوئ وے ښه به داوی چه دا سړک وران کړو چه د جګړو بنیاد ورک کړو -

بادشاه ګل فضل اکبر خان سره د بر مهمندو یو ورکوټے لښکر کوړ تر دهنه د کندا ؤ یه سړک ئے یو څو پلونه وران کړه - فیرنګیان د پلونو په ورانولو خفه شو په مهمندو ئے لام اوښلو - درے بریګیډه فوځ ئے مهمندو ته واستولو - حاجی صاحبؒ د فیرنګیانو خلاف د جهاد اعلان اوکړو - او د مهمندو لښکرے د فیرنګیانو د لښکر مقابلے د پاره کندا ؤ ته راوستلو - دے غزا کښې حلیمزو او ترکزو د فیرنګیانو مرسته اوکړه - کندا ؤ پورے خو هسے هم روبنے سړک جوړ وو - دے ځل فیرنګیانو مهمندو

ته لوے لوئ ټینکونه او لوئ لوئ توپے داغے کړے. دپاسه نه به ئے پرِ بمونه غورزول او دَ لاندے نه به ئے پرے دَ توپو ګوله باری کولے. حاجي صاحبؒ چه دَ انګریزانو دے تورتم ته او ټنل نو مقابلے دپاره بچپله غلټئ ته راغے. حضرت بادشاه ګل صاحب فضل اکبر دَ فیرنګیانو دَ لښکرو مخه اونیوه. په مهمندو دِ آفرین شی چه په تش ټوپک ئے دَ انګریزانو دَ توپو مشینګنونو ټینکونو او الوتکو مقابله کوله. فیرنګیان چه یوئ شو چه دے ځل هم مهمندو له شکست نه شو ورکولے او دَ ګندآو نه سړک باجوړ او دَ چترال سړک ته نه شو رسولے نو خپلو مخبرانو له ئے روپئ ورکړے چه کومه مورچه کښ بادشاه ګل صاحب وی په هغه مورچه سپین ځادر اوغوړه وئ چه مونږ پرے بمباری اوکړو او فیصله ئے اوکړو. دَ مخبرانو کښ یو ځلے محبوب ملک موسٰی خیل دَ بادشاه ګل صاحب په سنګر پټ سپین ځادر غوړولے وو. فیرنګیانو په دغه سنګر باندے سخته ګوله باری اوکړه خوش قسمتئ نه دَ ګوله باری نه للټ روپے بادشاه ګل صاحب پوے ممسے ته ننوتے وو. صحیح سلامت بچ شو.

دے ځل فیرنګیانو په مهمندو ډیر ظلم را ښکنته کړے وو. دَ الوتکو نه به

یئے او رلګو نکی بمونه دُدوئ په درمند دنو او کورونو غورزول۔ هرچه به ئے ورله سوزول۔ چینے تالاووُنه او ډهنډونو کښې به ئے ورته داسے بمونه راغورزول چه اُوبه به ئے ترینه مخے سره بهر اوغورزولے۔ او کندے کندے به ئے کړو۔ دَاوبو ولو کښې به ئے ورته دَزهرو بمونه غورزول۔ اودَ غازیانو په سمسو به ئے ګوله باری کوله۔ بیائے پرے دَزهرو ګیسونه پرے ښودل۔ دَداسے ظالم دښمن مقابله حاجی صاحبؒ دَکوهي په ښکر کوله۔ دَډیر نقصان نه پس فیرنګیانو دُ مختی غزدره کښې خیل سرګ تیر کړو۔ دَمهمندو دَلښکر وارخه قدرے خطا شو لیکن دَعثمان خیل قوم ۵۰ کسه غازیان دَاوچے ژورے سربانده مورچه نیښکه کړه۔ دَفیرنګیانو ګائیډ پلټن چه دے مورچے ته اوختنه او دَغازیانو امداد له چه ۱۵۰ غازیان نور را اورسیدل غازیانو پرے حمله اوکړه دګائیډ پلټنے دَافسرانو خدائ پاک وارخطا کړو۔ دادوه سوه غازیان ئے سترګونه په زرګونو ښکاره شو۔ او دائے یقین راغے چه مونږ قول به ساعت ګهړئ له مړهٔ کړی۔ دوئ خیل کیمپ ته خبر ورکړو چه دښمن بے شانه ډیر زیات دے په اوچے ژورے سخته ګوله باری اوکړئ۔ هغوئ بمباری اوکړه۔ ګائیډ پلټن کښې چه څه

پاتے وُو هغه کوله بارئ سره مره شو۔ دَ کوله بارئ نه پس دے غازیانو دَ کابینه پلټنے دَ سپاهیانو او افسرانو نه ټول میګزین واخستو۔ مغل نوم غازی چه په تام عیسے خیل وو۔ دَ یو انګریز نه ئے سر پرېکړو او ځان سره ئے یوړو۔ دَ دے تباهئ نه پس دَ فیرنګیانو وار خطا شو او صُلح ته تیار شو۔

سنه ۱۹۳۶ء کښ دَ صوبه سرحد ګورنر دَ حلیمزو یوه جرګه حاجی صاحبؒ له واستوله چه مونږ صلح کوو۔ حاجی صاحبؒ صُلح ته غاړه کیښوده۔ او دَ صُلح دَ پاره ئے دَ مهمند وَ دَ سپین ږیرو یوه جرګه منتخب کړه۔ دَ صُلح خبرو اترو دَ پاره دا جرګه فیرنګیانو له کندا ؤته لاړه۔ دَ صلح په خبرو کښ دَ صوبه سرحد ګورنر مهمندو ته ئے داوا ؤکو چه تاسو خلق دَ بین الاقوامی اصولو دَ جنګ پرواه نه ساتئ۔ داځو مره بده خبره ده چه تاسو ځمونږ دَ یو فیرنګی افسر نه سر پرېکړے دے او ځان سره مو اوړے دے۔ دے جرګه کښ یو سړے ورله جواب له دا یا سید وو۔ وے صاحب! دے کښ هیڅ شک نشته چه مونږ دَ یو فیرنګی نه سر پرېکړے دے۔ لیکن ته راته دا او وایه چه مونږ د سړه په توپک جنګ کولو۔ نو تاله هم پکار وو چه

په ټوپک دِ را سره مقابلې کړے وے۔ حمُونږ ملک کښې تا حمُونږ ډکوی

په لښکر دا څو میاشتې لاندے باندے بمباری دَ توپا و ټینکو نو گوله

باری ولے کوے۔ چه په دے ظلمونو به دے زړهٔ یخ نه شو نو بیا به دے

دربانده دَ ډزو ډک کیسونه واپس یخوده۔ دا کوم مذهب کښې رواو

دَ صوبه سرحد کورنړ چپ پاتے شو۔

دے جرگه کښې دَ مهمند وا و فیرنگیانو صلح اوشوه۔ دَ فیرنگیانو

فوځ کنډاوُ نه واپس راغے۔

سنهٔ ۱۹۳۲ء نه تر سنهٔ ۱۹۳۶ء پورے چه مهمند و څو مره غزا کانے

انگریزانو سره کړیدی۔ دُ بوتکال استاد سبز علی جان دَ هغه ټولو

غزا کانو حال سنهٔ ۱۹۳۶ء کښې منظوم کړیدے۔ هغه چاربیته دا ده:-

جنگ جوړ شو په مهمند غور کیدیَ عقلمند و

مُسلم سره په عنادی تل هم دا فتنه انگین

کوی ظلم انگریز

په دے جوړ شو جنگ دا او ویل فیرنګ

تیره وُمه یوسرکټ زهٔ په مهمند وکښے آځوانه

## قصه داورئ له مانه

بیا دوئ ملک اَلمبیر راوُغو ښتو شریر
دغه په مصلحت باندِ هم دا تجویز پسند وو
جنګ جوړشو په مهمندو

بیا لاړه چه وو ګر تفت بیلچے ګښتي. دُورمت
دَ دوئ په حواله کړه دے بیان تُتنه انګیز
کوی ظلم انګریز

ملګری حلیم زی وُو بل خوا نه ترګزی وُو
سرِک باندِ بِناکړه دَګینټو بیلچو کړنګاروو
ملک المبیر غدار وو

سرک ئے ترګند ابه بیاتیر کړلو اصحابه
المبیر ملک په مرسته دَانګریزانو بند په بند وو
جنګ جوړشو په مهمندو

سرک ترنخقی پورے دوئ بوتلو که ئے ګورے
حرص کښ قول اخته وُو دلالچ دام کښ نختلی

اوس کوم خواته به زغلی

فرزند دَ حاجی صاحبؒ خبر شو پرے نائبؒ

جناب فضل اکبر دَ ملا تاو کړے کمر بند وو

جنګ جوړ شو په مهمندو

دے راغللو تر پړنګه سنګه نه وه ورته ننګه

سړک دَ دُورانډ لو حکم دکړو پرے سرتیز

کوی ظلم انګریز

بیا راغلو غله تنګی ته غوړ کیده دے قیصے ته

حمو بنږه باچا ګل دَ خان سره کړه عثمان خیل

دشمن سره کړی ذیل

سړک چه وُرانیدلو امیر پرے خبر شولو

دستی راغلو انګریز نه ترهر څه وُړے بند وو

جنګ جوړ شو په مهمندو

بیا درے برګیډه فوځ روان شولو په موج

ګنداب کښ شو داخل راتله دَ خیاله په یکیز

امير ملک يې سر وو     دَ دوئ نه هم غټ شمر وو
په حد کښ دَ مهمند وُ هسې واچولو اس
غازيانو کوزاو پاس

جهازونه يې پرِ پرواز کړه     دَ جنګ په لورِ ساز کړه
ګوله يې بمباري پرې ذره م پرې چو دَ ناپسند و
جنګ جوړ شو په مهمند و

جهازونه پرې بمبار وو     دَ توپو غرمبهار وو
توپکو تنرهاريکښ راتللو به خونريز
کوي ظلم انګريز

په دوئ کښ يو جاسوس وو     بازونو کښ تيوس وو
نوم يې محبوب ګل وو دَ هغه واوري ګفتار
په مر سنه وُ دَ سرکار

دَ کابُل پلټنې حال     حما واورئ فلحال
غازيانو دا کوتره کړه دلته کې ورک شوې خوند و
جنګ جوړ شو په مهمند و

د انګریز د فوځ کپتان       داو غوخت دا حیوان
چه نوم ئے محبوب ګل وو ویل سنګر یز سره یو سنګریږ

کوی ظلم انګریز

وئیلے دے جاسوس       هم دے خبیث منحوس
وئیل د اوچے د ژوړے په مورچے زه سپین شادر

غوره دُمه برابر

شادرے کړو پر خور       هم دے جاسوس غل خور
بمبارے پر شروع کړو همه دے مورچے ته بوندوو

جنګ جوړ شو په مهمندو

پرے سخته بمباری کړه       ورپسے دے دشواری کړه
بمبار داسے مثال وو کله کوکے لکه تیز

کوی ظلم انګریز

غازی فضل اکبر       مورچے نه برابر
سالم شو رابیرون دا دوحدت د باغ بلبل

ذلیل شو محبوب ګل

غازیانو کړه غورزنګ فوځونه د فرنګ
په ماتے باندِے سر کړه دغازیانو داسے خوندوو
جنګ جوړ شو په مهمندو

نختی د غر په خوا کښ باور که ته په دا کړے
جګړه هسے شروع شوه قتلیدّه به خاص و عام
برے غوارم د اسلام

فرزند د ماسل خانو چه نوم ئے امین جان وو
سره د خیل لښکره پړ را تاوُ شو عقلمندوو
جنګ جوړ شو په مهمندو

یکښ نعره تکبیر وو دشمن له دا تعزیر وو
په لاس کښ نشانونه و ټیلے کړے ئے ریزه ریز
کوی ظلم انګریز

دوه درے سوه غازیان د تورے بهادران وو
حاجی د ترنګزو صاحب دا واړه برکت وو
صاحب د ولایت وو

پرے وو ظلم دَ سرکار جهازونو نه وُو وار
دَ توپو دَ جهازونو حساب نه وو پکښں دلبندو
جنګ جوړ شو په مهمندو

سکهان او هم هندوانو راجپوت او مرهټیان وو
سُنیان پکښں هم ډیر وو خوشیالګان کا پرِ ورځ تیږ
کوی ظلم انګریز

څه ئے قتل کړه مردار فوجونه دَ سرکار
پراته پړی پړی ؤوا وژړوندو وکړو کوین
کوی ظلم انګریز

مغل نوم ئے یو ځوان وو اسلام باندِ قربان وو
یوئے او وولسیت فیرنګے بیا ترِ دستی پریکړو سر
وئیل الله اکبر

فوځونه دَ انګریزانو په ماتے وُو سامعانو
آواز نعره تکبیر په دَ غازیانو پرِ سرګندو
جنګ جوړ شو په مهمندو

آخر کښې کړ تيښت حاجي صاحبؒ نه پټ
درولېږه ځو دَ ځناوه ده يو ځنوي دَ غم سهيز
کوي ظلم انګريز

مونږ لا تا يو دا لېږنې لي خاص صُلح له راغلی
راغلی يو ستاو دانه که نه اوکړې اجازت
کو او درته مِنت

حاجي صاحب دستخط تحرير کړلو يو خط
قاصد په حواله شو دا تحرير خوږې دُ قند دو
جنګ جوړ شو په مهمند دو

تو مونو ندی کړو بيش وئيلې وخت راغلو دُ عيش
انګويز شو لو لېښيمان معلومه دا چه سخت ژوند دو
جنګ جوړ شو په مهمند دو

فوجونه شو واپس دروغ نه وايم بکس
عاصي سبز علی جان تخيلو ويو شو زخيز
کوي ظلم انګريز

سنه ۱۹۳۶ء کښې د ترنګزو حاجی صاحب بیمار شو علاج د پاره کابل ته لاړو۔ هلته د بادشاه میلمه شو۔ صدر اعظم هاشم خان ورله ستړی مشی له راغے شاهی ډاکټر نه ئے علاج شروع کړو۔ د ډاکټر په صلاح حاجی صاحب غا بنونه اوویستل۔ لیکن څه خاص فائده ئے او نشوه دغه وُر ځو کښې د ترنګزو حاجی صاحب دوست محمود سنجری کابل کښې وو۔ هغه ورته دارائی ورکړه۔ حاجی صاحب بنه به داوی چه ته په وخت مهمند ته واپس لاړ شې۔ تاسو عمر خوړلے دے۔ دارو درباندے اثر نه کوی۔ حاجی صاحب د حکومت په موټر کښې جلال آباد ته راغے۔ د جلال آباد نه مهمند ته راغے۔ په ۱۴ دسمبر سنه ۱۹۳۷ء د دے فانی دنیا نه سفر اوکړو۔ غازی آباد مهمند کښې وصیت مطابق ښخ کړے شو۔

د حاجی صاحب د وفات خبر چه پیښور ته راورسید مخے سره پیښور ښهر او ټول هندوستان کښې ماتمی هرتال اوشو۔ او غائبانه جنازه ئے ځائے په ځائے ټولو ښهرونو کښې اوشو۔ د حاجی صاحب د وفات په حقله چه کوم چار بیته فرین شاعرو بیلے ده هغه

دادہ:-

# بهکتی چاربیته

## راځئ چه ورله ځونه

## د ترنګزو حاجی صاحب په سفر ځینه

قاصد د غم راوړو خبر راځی شو په جهان کښ شوروشر راځی زلزل شو ګنی لکه محشر راځی

چه ورله ځونه۔ په سم سوات کښ دا خبر اوګرځیدنه

جرګے جرګے قول مهمنان شو حاجی صاحبؒ ته خرامان شو د ډیره غمه سرګوران شو

راځئ چه ورله ځونه۔ په ډیر منت حاجی صاحبؒ رضا کوینه

په ډیر منت نه رضا کیږی د دے جهانه رخصتیږی جدائی راغله جدا کیږی

بیلتون ظالم ئے خواه مخواه چالان کوینه

دا یو سید بل حجازی وو اصلی مقام ترنګزی وو هجرت کړے او غازی وو

راځئ چه ورله ځونه۔ ځکه په مرګ قول جهان اولړزیدنه

بیلتونه ستا ناکړے درا ړے قول مریدان د صاحب ژاړی مینه دے د د ا ګامن راوړی

لکه صاحب د ترنګزو راوړے دونه

د اسلام باغ کښ یو ګلاب وو جلوه نما لکه آفتاب وو ترزن غازی عالیجناب وو

هغه ښايسته ګلاب خزان اوړ ؤ نه

د پېښور خلق پرې خبر شو　تمام ژړا په فرياد سر شو　د ډېره غمه کوړ و کړ شو

هر تال او کړو هر چا بند کړل دوکانو نه

وار د صاحبؒ د غزا تېر شو　په افريدي مهمند غم د پېر شو　شيرين بدن خاورو کښې زېر شو

او س د سرحد په سر به څوک کوي جنګونه

نور په دعاکې لاس او چت　خالق د ورکاندي جنت　په بادشاه ګل شه برکت

فريده! بس که دا د غم حکايتونه

راځئ چه ورله ځونه

د ترنګزو حاجي صاحبؒ نه درې ځامن پاتې شو (۱) بادشاه ګل فضل اکبر. (۲) فضل شاه صاحب. (۳) فضل معبود. او دوه لونړه چه ترنګزو کښې واده دي. ځامنو کښې بادشاه ګل فضل اکبر د پلار نوم روښانه کړېدے. پاکستان چه جوړ شو. بادشاه ګل صاحبؒ د سرحد حکومت هغه ټولے پابندۍ لرے کړے کوم چه پرِ فرنګيانو لګولے وے. بادشاه ګل صاحبؒ سره د خپلو رونړو پېښاور ته راغے د پلار په مال کښېنا ستو. سنه ۱۹۴۸-۴۹ء کښې د صوبه سرحد د مسلم

لیګ صدر شو ـ دَ کشمیر غزا له ئے خپل کشر ورور فضل شاه بادشاه ګل دَ مهمندُ لښکر سره واستولو ـ ټولو غازیانو ښه په زړه غزا وکړه ـ دَ ترنګزو حاجي صاحبؒ ماذونانو کښ غازي حاجي محمد آمین شاعر مشهور ماذون دے ـ ترنګزو کښ دَ حاجي صاحبؒ جماعت کښ ډیره دَے امر معروف کوي ـ

---

## دا اشعار دَ قبله حاجي صاحب دَ ترنګزو په یاد کښ په کال ۱۹۳۷ سنه کښ ولی محمدؐ طوفان لیکلی دی :-

توره تیاره شپه واته ګوریکی سحر څه شو؟

خدایه دُ مهمندو دَ اُفق هغه نمر څه شو؟

اُف دَ ترنګزو قبله حاجي صاحب وفات شو

زړهٔ مِ چیر ته لاړو له سینې مِ ځګر څه شو؟

مونږ چه پس له ډیرو اسویلو وو بیا موندلے

چاراڅخه یوړو ناګهانه ! اثر څه شو؟

ستړکه دَوطن پخپل نظر لیسے پرندیکی
تشه ده سیینٔ هغه ځلنده ګوهر څه شو؟

حباله دے چمنه په عناد کل دُمراد مات کړه؟
اُف! دُ فیرنګیانو په سرونو شمر رخه شو؟

بنه واره بیو دے چه ببر زمرے ترے لاړل
غاښی بوټ ولاړ په تعجب دی چه عمر څه شو؟

جُونه که ځلمی دی که پچي دی سرکوبی کا
بنځے نادینه ور لیسے ژاړی چه نر څه شو؟

میرچه نو پروند دُځلمو دَ قافلے وو
نن هغه بوډا ضعیف سپین ږیرے لبشر څه شو

اوس په ننګیالی فخر دُ چا په مشرۍ کړی؟
اے دُ وطن زمکے ستا پیا ورے پسر څه شو؟

عقل دُ لندن دَ سیاست ورته حیران وو
هغه دَخپل دور سر تریا په هُنر څه شو؟

اوس په دُباطل په مخ خپیره ور کوی څوک؟

تل چه به ئے دَ غیرو اخستلو خبر. څه شو؟
بیا په کور اختر شو دَ یورپ دَ مُرحبانو!
تُوره وینے ژاړی چه ثانی دَ حیدرؓ څه شو؟
بیا دالله نیولے دے دښمن نښتړ په لاس ګښن
څه شو دُر ملتونے. دَ مِلّت دَ پیر هوڅه شو؟
لا مو په سینو ګښں تو دے وینے سرے نه دی
هغه چه باعث دَ اِلتهاب وو مګر څه شو؟
چا موله سرونو نه پټکے دَ شرف کوز کړو؟
خیر دَ مسلمان او دښمنانو ته شر څه شو؟
ویر دے سرکوبی ده ماتمونه دی ژړا ده
هیڅ کوے نه شو پاکه خدایه ستا رضا ده

دَ حاجی صاحب سخاوت:- دحاجی صاحبؒ دَ سخاوت به د
دے نه نور زیات څه مثال پیش کړو چه دوئ به مهمندو ګښں خپل
ټول کور مال اسباب به لاره دَ خدای تعالیٰ ګښں دَرے وارے لوټ کړے دو.

# مقاصد

## دَ ادبی ټولی صوبه سرحد

(۱) دَ پښتو ادب له ترقی ورکول۔

(۲) پښتنو ځلمو ته دَ تقریر کولو چل ښودل۔

(۳) اَمیانو ته په پښتو، اردو، عربی انګریزی او فارسی
ژبه کښی حساب او لیکل لوستل علم و هنر ښودل۔

(۴) کلو کښی دَ کتب خانو او اخبارانو انتظام کول۔

(۵) دَ پښتو ښه ښه نظمونه او نثر ښه مضامین قوم ته
دَ کتاب په شکل کښی پیش کول۔

(په کتابت دَ فضل ودود کاتب برناکال)